


# دري اصوّل

## او شپږ اصــول
## او څلور قاعدې

ليکنه: شيخ
**محمد بن عبد الوهَّاب** (رحمه اللَّه)

د وفاة کال ۱۲۰۶هــ

# درې اصول

ورپسې

# شپږ اصول

ورپسې

# څلور قاعدې


لیکنه:

## شیخ: محمد بن عبد الوهاب (رحمه اللّه)

وفاة سنة 1206 هـ




# مقدّمة

الحمد لله، والصلاة والسلام على رسول الله، وعلى آله وصحبه ومن والاه، أما بعد:

دغه کتاب چې اوس زمونږ مخې ته پروت دی د (**خالص توحيد**) د رسالو د لړۍ شپږم کتاب دی، الله تعالی يې مونږ تحقيق، چاپ او خپرول آسان کړل.

د کتاب په جلد کې درې مهمې رسالې راغونډې کړی شوې دي:

**۱. درې اصول.**

**۲. شپږ اصول.**

**۳. څلور قاعدې.**

دغه ټولې رسالې د شيخ محمد بن عبد الوهاب رَحِمَهُ ٱللَّهُ[1] ليکنه ده، د هغه رسالې پيژندګلوی او په اړه يې بيان ته اړتيا نه لري، ځکه د توحيد او ايمان په مهمو اصولو بحث کوي، همدا وجه ده چې طالب العلمان د دې په حفظ کولو کې کوښښ کوي، علماء يې په شوق

(۱) الامام المجدد محمد بن عبد الوهاب بن سليمان بن علي التميمي النجدي چې په کال ۱۱۱۵ کې د عيينه ښارکې پيدا شوی، کوم چې اوس د رياض په شمال کموقعيت لري، او په کال ۱۲۰۶ کې وفات شوی. الله دې پرې رحم وکړی او په پراخه جنتونو کې دې واوسوي، اللهم امين.

سره تدریس کوي او شارحین پرې پراخه شرحې لیکي ترڅو یې پوره معنا راڅرګنده کړی شي، دغه رسالې ډیرې زیاتې چاپ شوي او الله یې له امله ډیر خلک د شرک څخه بچ کړي هم دي، نفع یې ډیره، نور یې خپور او خوشبو یې هرې خواته ده. الله عزوجل دې د دې رسالو په لیکوال رحم وکړي او هغه ته دې اجر او ثواب ورسوي.

مونږ چې کله د دغو مهمو رسالو په لوستلو نصیحت کوو، نو ترڅنګ یې لوستونکي ته دا بلنه هم ورکوو چې دغه رسالې حفظ کړي، په عبارت کې یې سوچ وکړي، په احکامو یې عمل وکړي او خلک ورته دعوت کړي، په همدې ډول مونږ د دې رسالو او داسې نورو رسالو چاپ کولو او د مسلمانانو ترمینځ خپرولو ته هم مسلمانان او د توان خاوندان رابلو، ترڅو د هغه چا په جمله کې راشو چې علم، عمل او ښوونه یې کړې وي، چې په پوره کامیابۍ سره کامیاب شو (باذن الله).

وآخر دعوانا أنِ الحمدُ للهِ ربِّ العالمین، وصلِّ اللهمَّ وسلِّمْ على نبینا محمد وعلى آله وصحبه أجمعین.



**شیخ محمد بن عبد الوهاب** رَحِمَهُ ٱللَّهُ **وایي:**

پوه شه – الله دې په تا رحم وکړي – چې په مونږ د څلورو مسائلو زده کړه فرض ده:

**لمړی** : علم او پوهه، او هغه دا چې الله، اود هغه پیغمبر صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ او اسلام په دلایلو سره وپیژنو.

**دویم**: په هغه عمل کول .

**دریم**: هغه ته دعوت ورکول (خلک رابلل).

**څلورم**: د دعوت په تکلیفونو صبر کول.

دلیل: الله تعالی فرمایي:( وَالْعَصْرِ* إِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ* إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ)[العصر].

**ترجمه**: قسم دی په زمانه، بیشکه انسان په زیان کې دی، پرته له هغو کسانو چه ایمان یې راوړ او نیک عمل یې تر وکړ او یو بل ته یې د حق وصیت وکړ او یو بل ته یې د صبر او ثبات وصیت وکړ.

امام شافعی رَحِمَهُ ٱللَّهُ ویلي دي: که چیرته الله د خلکو د هدایت لپاره د دغه سورت پرته بل سورت د حجت او دلیل په توګه نه وی را لیږلی، نو دا به هم د دوی لپاره بس وو.

امام بخاری رَحِمَهُ ٱللَّهُ ویلي دي: باب دی په بیان د دې خبرې کې چې علم له عمل څخه مخکې دی.

دلیل: الله تعالی فرمايي:( فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوَاكُمْ)[محمد:١٩].

**ترجمه** : نو ته پوهه شه چې بیشکه له الله تعالی څخه پرته بل د عبادت وړ او حقدار معبود نشته، او د خپلې ګناه بخښنه وغواړه.

نو علم یې له قول، (وینا) او عمل څخه مخکې ذکر کړ.

********

**پوهه شه**-الله دې په تا رحم وکړي- چې پر هر مسلمان؛ نر او ښځې د درېو مسائلو زده کول او په هغې عمل کول فرض دي.

**لمړۍ مسئله**: دا چې الله مونږ پيدا کړي يو او رزق يې راکړی دی، بیا یې خوشې نه یو پرې ایښي؛ بلکې مونږ ته یې پیغمبر رالیږلی دی، څوک چې د هغه پیروي او اطاعت وکړي جنت ته به ولاړ شي او څوک چې د هغه نافرماني وکړي دوزخ ته به ولاړ شي.

**دلیل**: الله تعالی فرمايي:{إِنَّا أَرْسَلْنَا إِلَيْكُمْ رَسُولًا شَاهِدًا عَلَيْكُمْ كَمَا أَرْسَلْنَا إِلَى فِرْعَوْنَ رَسُولًا * فَعَصَى فِرْعَوْنُ الرَّسُولَ فَأَخَذْنَاهُ أَخْذًا وَبِيلًا}[المزمل: ١٥-١٦].

**ترجمه**: بیشکه مونږ تاسې ته (داسې) پیغمبر را لیږلی دی چې پرتاسې باندې ګواه دی، لکه چې مو فرعون ته پیغمبر لیږلی وو، فرعون د هغه پیغمبر نافرماني وکړه، نو له همدی کبله مو هغه ډیر سخت ونیوه.

**دویمه مسئله**: دا چې الله تعالی دا نه خوښوی چې د هغه سره په عبادت کی څوک شریک ونیول شي، که دغه شریک الله ته نیږدې ملایک (پریښته) وي او که د الله له پلوه راستول شوی نبي وي.

**دلیل**: الله تعالی فرمايي:{وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَداً}[الجن:١٨]

**ترجمه**: او یقینا مسجدونه خاص الله لره دی، نو تاسو مه رابلئ د الله سره بل هیڅوک.

**دریمه مسئله**: څوک چې د پیغمبر اطاعت او پیروي وکړي، او په الله ایمان راوړي، نو هغه لپاره هیڅکله ندي جائز چې د هغه چا سره دوستي او محبت وکړي چې د الله او دهغه د پیغمبر دښمن وي، که څه هم ډیر نږدې دوست او خپل یې ولې نه وي.

**دلیل**: الله تعالی فرمايي: {لَا تَجِدُ قَوْماً يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءهُمْ أَوْ أَبْنَاءهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ

أَوْ عَشِيرَتَهُمْ أُوْلَئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ أُوْلَئِكَ حِزْبُ اللَّهِ أَلَا إِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾[المجادله:۲۲]

**ترجمه**: داسې خلک به ونه مومې چې (له يوې خوا) په الله او د آخرت په ورځ ايمان ولري، ( او له بلې خوا) د هغه کسانو سره چې د الله او د هغه د پيغمبر سره شخړه کوي ملګرتيا وکړي، که څه هم (دغه شخړه کونکي) د دوی پلرونه، زامن يا خپلوان وی، (دغه د کفارو سره دښمني کونکي خلک) همدوی دي چې الله د دوی په زړونو کی ايمان ځای پر ځای کړی دی، او دوی ته يې له خپل لوري څخه په يو روح سره قوت ورکړی دی، او دوی به داسې جنتونو ته داخل کړي چې د هغه (د بنګلو او ونو) لاندې به ويالې بهيږي، دوی به هلته هميشه اوسي، الله له دوی څخه خوشحاله شوی دی او دوی هم له هغه څخه خوشحاله دي، دوی د الله ډله ( لښکر) دی، پوه شئ چې يقينا يواځې د الله ډله بريالی او کاميابه ده.

*******

**ته پوه شه** – الله دې تا ته د خپلې لارې هدايت وکړي – چې حنيفي ابراهيمي ملت او دين دا دی چې ته يوازې د الله تعالی عبادت په اخلاص سره وکړې او په همدې سره الله ټولو خلکو ته امر کړی او د همدې لپاره يې پيدا کړي دي، لکه څرنګه چې فرمايي: {وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ} [الذاريات: ٥٦]

**ترجمه**: او ما ندي پيدا کړي پيريان او انسانان مګر د دې لپاره چې زما عبادت وکړي.

**د عبادت څخه مراد**: الله تعالی په وحدانيت سره پيژندل دي.

تر ټولو لوی کار چې الله په هغه سره بندګانو ته امر کړی هغه توحيد دی او **توحيد ديته وايي**: چې يوازې د يو الله تعالی عبادت وکړی شي.

او تر ټولو لوی هغه کار چې الله تعالی د هغه څخه بندګان منع کړي هغه شرک دی، او **شرک ديته وايي**: چې د الله تعالی سره په عبادت کې بل څوک شريک کړی شي.

**دليل**: الله تعالی فرمايي: {وَاعْبُدُواْ اللّهَ وَلاَ تُشْرِكُواْ بِهِ شَيْئاً}[النساء:٣٦]

**ترجمه**: او تاسو د الله عبادت وکړې او د هغه سره هيڅ څه مه شريکوئ.

**كه تاته وويل شي**: هغه درى اصول (اساسي خبرې) كومې دي، چې په هر انسان يې زده كړه فرض ده ؟

نو ته ورته ووايه: خپل رب ، خپل دين، او خپل پيغمبر محمدصَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ پيژندل.

******

## لمړی اصل:

## د خپل رب (پروردگار) پيژندل:

**کله چې تاته وويل شي ستا رب څوک دی؟**

نو ته ووايه : زما رب هغه ذات دی چې زه يې پاللی يم، او ټول مخلوق يې په خپل نعمت سره پاللی دی او هماغه زما معبود دی، پرته له هغه بل معبود نه لرم.

**دليل:** الله تعالی فرمايي: {الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ}[الفاتحه:۲].

**ترجمه**: ټول د کمال صفتونه يوازې الله لره دي، چې د ټول مخلوق پالونکی دی.

پرته د الله تعالی نه نور ټول مخلوقات عالم بلل کيږی او زه د دی عالم يوه برخه يم.

**کله چې تاته وويل شي: خپل رب دې په څه پيژندلی دی؟**

نو ته ووايه: چې د هغه د قدرت په نښو او مخلوقاتو سره مې پيژندل؛ شپه، ورځ، لمر، او سپوږمی د هغه د قدرله نښو څخه دي او آسمانونه او ځمکې او کوم شيان چې په هغې کې دي او يا د دواړو ترمنځ دي، د هغه له مخلوقاتو څخه دي.

**دليل**:الله تعالی فرمايي: {وَمِنْ آيَاتِهِ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ لَا تَسْجُدُوا لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ وَاسْجُدُوا لِلَّهِ الَّذِي خَلَقَهُنَّ إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ}[فصلت: ٣٧]

**ترجمه**: او د هغه له آياتونو ( دقدرت له د نښو ) څخه شپه، او ورځ، لمر او سپوږمۍ دي، نه لمر ته سجده وکړئ او نه سپوږمۍ ته، بلکه هغه الله ته سجده وکړئ چې هغوی يې پيدا کړي دي، که تاسې يوازې د هغه عبادت کوئ .

او دا قول چې فرمايي: {إِنَّ رَبَّكُمُ اللهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَى عَلَى الْعَرْشِ يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثاً وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ أَلاَ لَهُ الْخَلْقُ وَالأَمْرُ تَبَارَكَ اللهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ}[الاعراف: ٥٤].

**ترجمه**: بيشکه ستاسو رب هغه الله دی چې آسمانونه او ځمکه يې په شپږو ورځو کې پيدا کړل، او بيا يې پر عرش باندې استواء وکړه،شپه لکه پردې غوندې په ورځ غوړوي، هره يوه په تلوار سره بله طلبوي، او لمر ، سپوږمۍ او ستوري د هغه تر فرمان لاندې دي، خبردار! پيداکول او حکم فرمايل خاص هغه لره دي، الله برکت والا دی چې د مخلوق رب دی.

**رب**: په حقه معبود.

**دليل**: الله تعالى فرمايي:{يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ * الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا وَالسَّمَاءَ بِنَاءً وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَكُمْ فَلَا تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَنْدَادًا وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ}[البقره: ۲۱-۲۲].

**ترجمه**: اى خلكو د خپل رب عبادت وكړئ، هغه ذات چې تاسې او له تاسې مخکې خلک يې پيدا كړي دي، د دې لپاره چې پرهيزګار شئ، هغه (ذات) چې زمكه يې تاسې ته فرش او اسمان يې چت جوړ كړى او له آسمانه اوبه را اوروي چې د هغې په وسيله يې ستاسو د روزۍ لپاره (هرډول) ميوې را ويستلې دي، نو تاسو مه جوړوي الله تعالى لره شريكان او تاسو پوهيږئ.

ابن كثير رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي: هغه ذات چې د دې شيانو پيدا كونكى دى، هم هغه د عبادت وړ دى.

د عبادتونو ټول هغه ډولونه چې الله تعالى پرې امر كړى، لكه اسلام، ايمان، احسان، دعا، ويره، اميد، توكل، (د الله تعالى څخه) د ثواب طمع لرل، او د عذاب څخه يې ويريدل، (خشوع) د الله ويره په زړه كې ساتل، رجوع كول، مرسته او مدد غوستل، فرياد كول،

ذبح (حلاله) کول، نذر کول، او داسې نور، هغه ټول عبادات چې الله تعالی پرې امر کوي دا ټول خاص الله لره دی .

**دلیل:** الله تعالی فرمايي: {وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَداً}[الجن: ١٨].

**ترجمه:** او مسجدونه خاص الله لره دی، نو د هغه سره بل هیڅوک شریک مه بولی.

څوک چې لدې عبادتونو څخه څه شی د الله تعالی نه پرته بل چا لره وکړي، هغه مشرک او کافر ګڼل کیږی.

**دلیل:** الله تعالی فرمايي: {وَمَن يَدْعُ مَعَ اللهِ إِلَهاً آخَرَ لَا بُرْهَانَ لَهُ بِهِ فَإِنَّمَا حِسَابُهُ عِندَ رَبِّهِ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ}[المؤمنون: ١١٧]

**ترجمه:** او هر څوک چې د الله تعالی سره بل معبود وبولي، او د خپل دغه کار لپاره د الله له پلوه کوم دلیل نلری، نو بیشکه چې د هغه حساب د هغه د رب سره دی، یقینا کافر(هیڅکله)نه کامیابیږي.

او دا حدیث « الدعاء مخ العباده » دعاء د عبادت مغز دی.

او د الله دا قول چې فرمايي: {وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ}[غافر: ٦٠].

**ترجمه**: او ستاسې رب وايي: زما څخه وغواړئ چې دعا مو قبوله کړم، يقينا هغه خلک چې د الله د عبادت څخه تکبر کوي، دوی به خامخا جهنم ته خوار او سپک ننوځي.

د الله څخه د ويريدلو دليل: فَلاَ تَخَافُوهُمْ وَخَافُونِ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ}[ آل عمرآن ۱۷۵].

**ترجمه**: د دوی څخه مه ويريږئ او زما څخه وويريږئ که تاسو مؤمنان يئ.

د الله د رحمت د اميد ساتلو دليل: {فَمَن كَانَ يَرْجُو لِقَاء رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلاً صَالِحاً وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَداً} [الكهف:۱۱۰].

**ترجمه**: هر څوک چې د خپل رب د مخامخ کيدلو هيله لري نو هغه دې نيک عمل وکړي او د خپل رب سره دې هيڅوک نه شريکوي.

پر الله د توکل کولو دليل:{وَعَلَى اللّهِ فَتَوَكَّلُواْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ}[المائده:۲۳].

**ترجمه**:په الله توکل وکړئ که تاسو مؤمنان يئ.

بل ځای فرمايي: {وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ}[الطلاق:۳].

**ترجمه** : او هر څوک چې پر الله توکل وکړي، نو يوائې الله ورته بس او کافي دی.

د الله تعالى د ثواب د امید لرلو او د هغه دعذاب څخه د ویدلو او هغه ته د خشوع کولو دلیل: {إِنَّهُمْ كَانُوا يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَيَدْعُونَنَا رَغَباً وَرَهَباً وَكَانُوا لَنَا خَاشِعِينَ}[الانبياء:٩٠].

**ترجمه**: بیشکه دوی داسې خلک وو چې د خیر په کارونو کښې به یو له بل څخه وړاندې کیدل او دوی به مونږ د ثواب په امید او د عذاب له ویرې رابللو او دوی مونږ ته خشوع(عاجزي) کونکي وو.

د الله تعالى نه په زړه کې د ویرې لرلو دلیل:{فَلاَ تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ}[البقره ١٥٠].

**ترجمه**: نو له هغوی نه مه ویریږئ او زما څخه وویریږئ.

الله تعالى ته د رجوع (انابت) کولو:{وَأَنِيبُوا إِلَى رَبِّكُمْ وَأَسْلِمُوا لَهُ}[الزمر: ٥٤].

**ترجمه**: او خپل رب ته رجوع وکړئ او هغه ته غاړه کیږدئ.

د الله تعالى نه د مرستې او مدد غوښتلو دلیل:{إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ}[الفاتحه: ٥].

**ترجمه**:یوازې ستا عبادت کوو او یوازې ستا څخه مرسته غواړو.

او دا حدیث«إذا استعنتَ فاستعنْ بالله».

**ترجمه**: کله چې ته مرسته غواړې نو یوائې د الله تعالی څخه یې وغواړه.

دالله تعالی څخه د پناه غوښتلو دلیل: {قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ}.

**ترجمه** : ووایه : پناه غواړم په رب د سبا.

دالله عزوجل دغه وینا: {قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ}.

**ترجمه**: زه پناه غواړم په رب د خلکو.

الله ته د فریاد کولو دلیل:{إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي مُمِدُّكُم بِأَلْفٍ مِّنَ الْمَلآئِكَةِ مُرْدِفِينَ}[الانفال: ۹].

**ترجمه**: هغه وخت یاد کړئ کله مو چې خپل رب ته فریاد کولو (او مرسته مو ترې غوښتله) نو هغه ستاسې غوښتنه ومنله.

الله ته د ذبح (حلالکې) کولو دلیل: {قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ * لَا شَرِيكَ لَهُ...}[الانعام: ۱۶۳-۱۶۴].

**ترجمه**: ووایه یقینا زما لمونځ، زما قرباني، زما ژوندون او زما مرګ (ټول) الله لره دي چې رب د مخلوقاتو دی، هیڅ شریک ورسره...).

او بل دا حدیث« لعن الله من ذبح لغیر الله»

**ترجمه** : الله په هغه چا لعنت کړی چې د الله تعالی څخه پرته بل چاته ذبح (حلالکه) کوي.

الله تعالی ته د نذر کولو دلیل: {يُوفُونَ بِالنَّذْرِ وَيَخَافُونَ يَوْماً كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيراً}[الانسان: ٧].

**ترجمه**: دوی خپل نذرونه تر سره کوي او دهغې ورځې څخه ویریږي چې شریې خپور او ښکاره دی.

## دويم اصل:د اسلام دين په دلائلو سره پيژندل:

د اسلام دين دادی چې بنده يوازې الله تعالی ته د هغه د وحدانيت په منلو تسليم شي او د هغه اطاعت او بندګي وکړي او د شرک او مشرکينو څخه براءت او بيزاري وکړي.

**د اسلام دين درې درجې لري**: اسلام، ايمان ، احسان او دا هره درجه څو ارکان لری.

### لمړی درجه : اسلام

**د اسلام پنځه ارکان دي:**

* دا ګواهي کول چې پرته د الله تعالی نه بل د عبادت وړ او معبود نشته او محمد صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله بنده او پيغمبر دی* د لمونځ پابندي کول*زکات ورکول* د رمضان روژه *او د بيت الله حج کول.

د الله تعالی د يو والي د ګواهی دليل: {شَهِدَ اللّهُ أَنَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ وَالْمَلاَئِكَةُ وَأُوْلُواْ الْعِلْمِ قَآئِمَاً بِالْقِسْطِ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ}[آل عمران: ١٨].

**ترجمه**: الله تعالی، پرښتو او د علم خاوندان پدې ګواهي ورکړې چې بيشکه نشته په حقه بل معبود مګر همدغه يو الله دی، په عدل ولاړ دی، د هغه نه بغير د عبادت وړ او معبود نشته، هغه زورور او حکمت والا دی.

**د (لا اله الا الله ) معنا:** د الله عزوجل نه بغیر په حق بل معبود نشته.

په (لااله) سره د الله عزوجل نه پرته نور ټول خدايان نفي شول او په (الا الله) سره يواځې الله تعالی ته د بندګۍ اثبات وشو، همدا ډول يې په بادشاهۍ کې هم شريک نشته.

د دې خبرې وضاحت او تفسير د الله پدی قول کی راغلی دی: {وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ إِنَّنِي بَرَاءٌ مِمَّا تَعْبُدُونَ * إِلَّا الَّذِي فَطَرَنِي فَإِنَّهُ سَيَهْدِينِ * وَجَعَلَهَا كَلِمَةً بَاقِيَةً فِي عَقِبِهِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ}[الزخرف: ۲۶-۲۷].

**ترجمه:** او هغه وخت یاد کړه چې ابراهیمعَلَيْهِ ٱلسَّلَامُخپل پلار او قوم ته وويل: بیشکه زه د هغه څه نه بیزار یم چې تاسو یې بندګي کوئ، پرته د هغه ذات نه چې زه یې پیدا کړی یم او بیشکه هغه به ماته لارښوونه وکړي، هغه د توحید کلمه په خپل اولاد کښې پاتې کیدونکې کلمه وګرځوله، ترڅو دوی الله ته بیرته راوګرځي.

او د الله دغه وینا: {قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللهِ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ}[آل عمران:۶۴].

**ترجمه**: ای د کتاب والاو هغې کلمې ته راشئ چې زمونږ او ستاسو ترمینځ برابره ده، چې مونږ به بندګي نه کوو مګر یواځې د یو الله او د هغه سره به هیڅ شرک نه کوو او نه به بعضې زمونږ بعضو نورو لره د الله نه بغیر په دوستۍ نیسي، که چیرته دوی مخ واړوو نو ورته ووایه چې یقینا مونږ خو مسلمانان یو.

د دې خبرې دلیل چې محمدصَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله رسول دی: {لَقَدْ جَاءكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَؤُوفٌ رَّحِيمٌ}[التوبه: ١٢٨].

**ترجمه**: بیشکه چې تاسې ته یو پیغمبر ستاسې له جنس څخه راغلی دی، ستاسې ربړونه او تکلیف وربانديې ډیر ګران دی، ستاسې(د خیر لپاره) ډیر حرصناک دی او پر مؤمنانو باندې شفقت کونکی او مهربان دی.

د محمدصَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په پیغمبرۍ او رسالت د ګواهۍ کولو معناه داده: چې د هغه د اوامرو اطاعت وشي او د خبرو تصدیق یې وشي او د کومو شیانو څخه چې یې منع کړې ده، د هغې څخه پرهیز او ځان وژغورل شي او یوازې د هغه د سنت او طریقې مطابق د الله عبادت وشي.

د لمانځه ،زکات ، او د توحید د تفسیر دلیل: {وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حُنَفَاء وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ وَذَلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ}[ دالبینه: ۵].

**ترجمه** :او دوی ته امر ندی شوی مګر د دې خبرې چې دوی دې په اخلاص سره د الله بندګي وکړي او د شرک څخه دې ځان پاک او لرې وساتي، د لمونځ پابندي دې وکړي او زکات دې ورکړي او همدغه برابر او مضبوط دین دی.

د روژی نیولو دلیل:{يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ}[البقره: ۱۸۳].

**ترجمه**: ای مؤمنانو، روژه پر تاسی داسې فرض کړی شوې لکه په مخکنو خلکو چې فرض وه، پدې خاطر چې تاسو تقوا دارشئ.

د حج د فرضیت دلیل: {وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ اللهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ}[آل عمران:۹۷].

**ترجمه**: او فرض دی په خلکو د الله لپاره د بیت الله حج، په هغه چا چې د حج لپاره د لارې توان لري او څوک چې کفر وکړي نو الله عزوجل د مخلوق څخه بې پروا دی.

## دویمه مرتبه: ایمان

ایمان څه د پاسه اویا څانګې لري، له ټولو اوچته او لوړه يې:(لا اله الا الله ) ويل دی او تر ټولو کوچنۍ يې د لارې څخه د ضرر شيان لرې کول دي او حياء هم د ایمان یوه برخه ده.

**د ایمان شپږ رکنونه دی:** په الله ایمان راوړل ، او د الله په ملائکو (پرښتو)، کتابونو، پيغمبرانو، د قيامت په ورځ او د خير او شر په قضا او قدر ایمان راوړل.

د دې شپږو رکنونو دلیل د الله تعالی دا قول: {لَّيْسَ الْبِرَّ أَن تُوَلُّواْ وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَالْمَلآئِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ}[البقره:۱۷۷].

**ترجمه:** نيکي يوازې دا نه ده چې مخونه ختيځ او لويديځ لورې ته واړوئ، بلکې (غوره)نيکي د هغه چا ده چې په الله، د آخرت په ورځ او په پيغمبرانو ایمان راوړي.

د قضا او قدر دليل:{إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ}[القمر: ۴۹].، **ترجمه** : بیشکه مونږ هر یو شی د یو تقدير او اندازې له مخې پيدا کړی.

## دریمه درجه : احسان

**احسان یواځې یو رکن لري**: او هغه دا چې ته د الله تعالی داسې عبادت وکړې لکه چې ته هغه وینې، که ته يې نه وینې نو هغه خو تا وینې.

د دې خبرې دلیل: {إِنَّ اللّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَواْ وَّالَّذِينَ هُم مُّحْسِنُونَ}[النحل: ١٢٨].

**ترجمه**:بیشکه الله تعالی له پرهیزګارانو او نیکو کارو سره دی.

او دا قول:{وَتَوَكَّلْ عَلَى الْعَزِيزِ الرَّحِيمِ * الَّذِي يَرَاكَ حِينَ تَقُومُ * وَتَقَلُّبَكَ فِي السَّاجِدِينَ * إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ}[الشعراء: ٢١٧ -٢٢٠].

**ترجمه**: او په هغه ذات توکل وکړه چې د لوی قدرت خاوند او مهربان دی، هغه ذات چې تاویني کله چې ( دعبادت لپاره ) راپاڅیږې، او هم د سجده کونکو په منځ کښې ستا حرکتونه، بیشکه چې هم دغه الله دی اوریدونکی او د علم خاوند دی.

او دا قول چې فرمايي: {وَمَا تَكُونُ فِي شَأْنٍ وَمَا تَتْلُو مِنْهُ مِن قُرْآنٍ وَلاَ تَعْمَلُونَ مِنْ عَمَلٍ إِلاَّ كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُوداً إِذْ تُفِيضُونَ فِيْهِ...}[يونس: ٦١]

**ترجمه** : او ته په هيڅ کوم کار کې نه يې، نه کوم د قرآن کوم تلاوت کوې او نه کوم بل عمل مګر مونږ پر تاسو ګواه يو( تاسو ګورو) کله چې تاسو په هغه کې مشغوليږئ.

او د احاديثو نه يې دليل د جبريلعَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ هغه مشهور حديث دی چې عمر بن الخطابرَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ روايت کړی دی،وايي: په داسې حال کی چې مونږ د پيغمبرصَلَّىٰ ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَسره ناست وو يو داسې سړی راغی چې تکې سپينې جامې او تک تور ويښته يې و، د سفر کومې نښې ورباندی نه ليدل کيدې او نه هم له مونږ څخه چا پيژانده، د پيغمبرصَلَّىٰ ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته کيناست، او خپل ځنګنونه يې د پيغمبرصَلَّىٰ ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَځنګنونو سره ولګول او لاسونه يې پر خپلو ورنونو کيښودل او ويې ويل: ای محمده -صَلَّىٰ ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، د اسلام څخه مې خبر کړه.

پيغمبرصَلَّىٰ ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: اسلام دا دی: چې ته اقرار وکړې چې پرته د الله تعالی څخه بل د عبادت وړ معبود نشته او محمدصَلَّىٰ ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه پيغمبر دی، او د لمونځ پاېندي وکړې، زکات ورکړې او د بيت الله حج وکړې که د لارې توان درسره وو.

(نا اشنا سړي) وويل: رښتيا دې وويل.

نو مونږ تعجب وکړ چې پوښته هم کوی او تصدیق هم!!!

بیا(نا اشنا سړي) وویل: د ایمان څخه مې خبر کړه.

پیغمبرصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ وویل:(ایمان دادی)چې په الله تعالی او د هغه په ملائکو، کتابونو، پیغمبرانو، د آخرت په ورځ او د خیر او شر په قضا او قدر ایمان راوړې.

(نا اشنا سړي) وویل: ربنتیا دې وویل، د احسان څخه مې خبر کړه.

پیغمبرصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ وفرمایل: (احسان دادی ) چې د الله داسې عبادت وکړې لکه ته يې چې وينې، كه ته يې نه وينې، نو هغه خو دې ويني.

نا اشنا سړي وویل: د قیامت څخه مې خبر کړه.

پیغمبرصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ وفرمایل: د چا نه چې پوښتنه کیږي پدې اړه د هغه چا نه ډیر علم نه لري چې پوښتنه کوي.

نا اشنا سړي وویل: نو د قیامت د نښو څخه مې خبر کړه.

پیغمبرصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ وفرمایل: (د قیامت نښی دا دي) چې وينځه خپل بادار وزيږوي، او لوڅې خپې، بربنډ، فقیران، د پسونو څرونکي(چوپانان) وګورې چې د تعمیرونو (په جوړولو کی به) له یو بل څخه زیات کوښښ کوی.

(راوی)وايي: بیا دغه نا اشنا سړی ولاړ، مونږ څه وخت کیناستو نو پیغمبر صَلَّىٰ اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چې ای عمره! آیا پوهیږې دا پوښتنه کوونکی څوک وو ؟ ما ورته وویل: چې الله تعالی او د هغه رسول ښه پوهیږی، پیغمبر صَلَّىٰ اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دا جبریل وو، راغلی وو چې تاسو ته ستاسو دین وښایي.

## دريم اصل:د خپل پيغمبر محمدصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ پيژندل

ستاسې پيغمبرصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ محمد بن عبد الله بن عبد المطلب بن هاشم دی او هاشم د قريشو څخه دی او قريش د عربو څخه دي او عرب د اسماعيل بن ابراهيم الخليل عليه وعلى نبينا افضل الصلاة والسلام، دنسل څخه دی.

د پيغمبرصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ عمر (۶۳) کاله وو، چې څلويښت (۴۰) کاله يې د نبوت څخه مخې او درويشت (۲۳) کاله يې نبوت او رسالت په حال کې تير کړي دي، په (اقرأ) سورت نبي او په (الْمُدَّثِّر) سورت پيغمبر شو.

د اسيدو ځايې يې مکه وه او هجرت يې مدينې ته کړی وو.

الله تعالی (خلکو ته) استولی دی چې د شرک څخه يي وويروئ او توحيد ته يې دعوت کړی.

**دليل**: الله تعالى فرمايي: {يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ * قُمْ فَأَنْذِرْ * وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ *وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ*وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ*وَلَا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ * وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ}[المدثر: ۱....۸]

**ترجمه**: ای په ځان په څادر کې نغښتونکيه، پاڅه؛ (بندګان) ويروه او خپل رب په لويې سره ياد کړه، خپلې جامې پاکې کړه او له پليتې څخه ډډه او (پرهيز) وکړه، او (پر چا باندی) منت مه ږده، ( د

هغه څه په  مقابل کښی چې ورکړي دې دي) چې بیا ترې زیات بدل وغواړې او د خپل رب لپاره صبر وکړه.

د (قُمْ فَأَنْذِرْ) معنا: د شرک څخه يې وويروه او توحيد ته يې دعوت کړه.

د (وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ) معنا: په توحيد سره (د خپل رب) تعظيم وکړه.

د (وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ)معنا: خپل عملونه د شرک څخه پاک کړه.

د (وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ)معنا: رجز: بتان، او هجر: پرېښودلو ته وايي، طريقه يې دا ده: چې بتان او د هغوی د پيروانو (مشرکينو ) څخه بيزاره کيدل.

پيغمبر صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ لس کاله په همدې شکل سره توحيد ته خلک رابلل، د لسو کلونو وروسته آسمان ته وخيژول شو او پنځه لمونځونه پرې فرض شول، په مکه کې يې درې کاله لمونځ وکړ او بيا ورته مدينې ته د هجرت امر وشو.

**هجرت:** د شرک د ملک څخه د اسلام ملک ته تلل، چې دغه ډول هجر د دې امت په هر مسلمان فرض دی، چې ترقيامته به جاري وي.

**دليل**: الله فرمايي: {إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ قَالُوا فِيمَ كُنْتُمْ قَالُوا كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الْأَرْضِ قَالُوا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوا فِيهَا فَأُولَئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَسَاءَتْ مَصِيرًا * إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ لَا يَسْتَطِيعُونَ حِيلَةً وَلَا يَهْتَدُونَ سَبِيلًا * فَأُولَئِكَ عَسَى اللَّهُ أَنْ يَعْفُوَ عَنْهُمْ وَكَانَ اللَّهُ عَفُوًّا غَفُورًا} [النساء ٩٧-٩٩]

**ترجمه** : بيشکه هغه کسان چې په خپلو ځانونو يې ظلم کړی، کله چې ملائکې د دوی روحونه اخلي، ورته وايي: تاسې په څه حال کې وئ؟ دوی وايي: مونږ د ځمکې په مخ ضعيفان (مظلومان) وو، ملائکې به ورته وايي: آيا د الله ځمکه پراخه نه وه! تر څو پکې تاسو هجرت کړی وای؟ نو د دوی ځای دوزخ دی او ډير بد ځای د ورتلو دی، خو ناتوان نارينه، ښځې او واړه چې نه د کومې وسيلې توان لري او نه کومه لاره پيدا کولای شي، نو داسې خلک! هيله ده چې الله الله د دوی څخه(د دوی دغه ګناهونه) وبخښي، او الله عفو کونکی، بخښونکی ذات دی.

او دا الله تعالی دا وينا: {يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ أَرْضِي وَاسِعَةٌ فَإِيَّايَ فَاعْبُدُونِ}[العنكبوت: ٥٦].

**ترجمه** : ای زما بندګانو، بیشکه زما ځمکه پراخه ده، نو خاص ما لره عبادت وکړی.

بغوی رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي: دا آیت د هغه مسلمانانو په هکله نازل شوی دی چې په مکه کی پاتې وو او هجرت یې نه وو کړی (الله تعالی) هغوی ته په ایمان سره خطاب وکړ.

او د حدیثو څخه د هجرت دلیل د پیغمبرصَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا قول دی چې فرمايي: «لا تنقطعُ الهجرةُ حتى تنقطعَ التوبة، ولا تنقطعُ التوبةُ حتى تَطْلُعَ الشَّمسُ مِنْ مغربها».

**ترجمه**: تر څو چې د توبې دروازه نه وي بنده شوي، نو د هجرت (حکم) له منځه نه ځي او د توبې دروازه تر هغې نه بندیږي چې لمر له مغربه راپورته نشي.

کله چې پیغمبرصَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مدینه کی ځای پر ځای شو، نو د اسلام د نورو احکامو امر یې جاري کړ، لکه زکات ، روژه ، حج ، اذان ، جهاد ، امربالمعروف، نهي عن المنکراو داسې نو شرعي احکام.

پیغمبرصَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په همدغه شکل لس کاله پاتې شو او له هغه وروسته بیا وفات شو ، خو دین یې پاتې شو، دا د هغه دین دی، هیڅ داسې د خیر کار نشته چې رسول اللهصَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته

خپل امت ندی رابللی، او نه هیڅ ډول شر شته چې هغه ترې خپل امت نه دی ویرولی.

هغه خیر چې رسول اللهصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ ورته خپل امت دعوت کړی: توحید او هر هغه څه دي چې الله تعالی يې خوښوي او هغه شر چې هغه ترې خپل امت ویرولی:شرک او هر هغه څه دي چې الله تعالی يې نه خوښوی.

پیغمبرصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ د الله تعالی لخوا ټولو خلکو ته رالیږل شوی دی او د هغه اطاعت يې پر ټولو انسانانو او پیریانو فرض کړی دی.

**دلیل:** الله تعالی فرمايي : {قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعاً}[اعراف: ١٥٨].

**ترجمه** : ورته ووایه: ای خلکو بیشکه زه ستاسې د ټولو لپاره د الله پیغمبر یم.

د پیغمبرصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ په ذریعه الله تعالی خپل دین پوره کړ.

**دلیل:** الله تعالی فرمایی: {الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الإِسْلاَمَ دِيناً}[المائده: ٣].

**ترجمه** : نن ورځ ما ستاسې لپاره ستاسې دين پوره کړ او پر تاسې مې خپل سر ته ورسو او اسلام مې ستاسې لپاره د دين (په توګه) غوره کړ.

د پيغمبرصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ د وفات دليل:الله تعالى فرمايي:{إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُمْ مَيِّتُونَ * ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِنْدَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُونَ}[الزمر:٣٠ - ٣١].

**ترجمه** : بيشکه ته مړ کيدونکى يې او دوى هم مړه کيدونکي دي او بيا به تاسو يقينا د قيامت په ورځ د خپل رب په حضور (دخپلو کړونو په هکله) جګړه وکړئ.

خلک چې کله مړه شي، نو بيا (د قيامت په ورځ ) بيرته را ژوندي کيږي.

**دليل**: الله تعالى فرمايي: {مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَى}[طه: ٥٥].

**ترجمه** : تاسې مو له دې (خاورې)څخه پيدا کړي يئ او همدې ته به تاسو راګرځئ او بيا به تاسې له دې څخه بل ځل را وباسو.

او دا قول چې فرمايي:{وَاللَّهُ أَنْبَتَكُمْ مِنَ الْأَرْضِ نَبَاتًا * ثُمَّ يُعِيدُكُمْ فِيهَا وَيُخْرِجُكُمْ إِخْرَاجًا}[نوح: ١٧ -١٨].

**ترجمه**: او الله تعالی تاسې له ځمکې څخه پیدا کړی یئ او بیا به تاسې بیرته هلته ورګرځوي او بیا به مو (د قیامت په ورځ) په راویستو سره راوباسی.

د قیامت په ورځ د را پاڅیدو نه وروسته به د عملونو حساب کیدی شي او د هغې بدله به ورکول کیږی، **دلیل**: الله تعالی فرمایي:{وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ لِيَجْزِيَ الَّذِينَ أَسَاؤُوا بِمَا عَمِلُوا وَيَجْزِيَ الَّذِينَ أَحْسَنُوا بِالْحُسْنَى}[النجم: ٣١].

**ترجمه**: الله تعالی لره دي هغه څه چې په اسمانونو او هغه څه چې په ځمکه کې دي، ترڅو سزا ورکړي هغه چا ته چې بدي یې کړې په خپل عمل او بدله ورکړي هغه چا ته چې نیک عمل یې کړی په جنت سره.

څوک چې د مرګ څخه وروسته د بیا ژوندي کیدو څخه انکار وکړي کافر کیږي.

**دلیل**: الله تعالی فرمایي:{زَعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن لَّن يُبْعَثُوا قُلْ بَلَى وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ وَذَلِكَ عَلَى اللهِ يَسِيرٌ}[التغابن: ٧].

**ترجمه** : کافران داسې ګمان کوي چې دوی به هیڅکله را ژوندي نه کړی شي، ته ورته ووایه: هوکې!، زما دې په خپل رب قسم وي

چې تاسو به خامخا را ژوندي کیږئ او بیا به تاسو ته د هغه څه بدله درکول کیږي چې تاسو کړي دي او دا کار په الله تعالی آسان دي.

الله تعالی ټول پیغمبران ویرونکي او زیری ورکونکي رالیږلي دي.

**دلیل**: الله تعالی فرمايي:{رُسُلاً مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ لِئَلاَّ يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللّهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ وَكَانَ اللّهُ عَزِيزاً حَكِيماً}[النساء: ۱۶۵].

**ترجمه**: داسې پیغمبران چې زیری ورکوونکي او هم ویره ورکونکي دي، پدې خاطر چې د خلکو سره د پیغمبرانو(د استولو) نه وروسته پر الله تعالی باندې کوم دلیل نه وي.

د ټولو څخه لمړی پیغمبر نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ دی، او وروستنی پیغمبر محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی، چې د ټولو پیغمبرانو د پای ټکی دی.

د دې خبرې دلیل چې نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ د ټولو څخه لمړی پیغمبر دی د الله دا قول دی چې فرمایي: {إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَى نُوحٍ وَالنَّبِيِّينَ مِن بَعْدِهِ}[النساء: ۱۶۳].

**ترجمه** : بیشکه مونږ تاته داسې وحي کړې، لکه چې نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ او د هغه څخه وروسته پیغمبرانو ته مو کړې وه.

د نوح عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ څخه تر محمد صَلَّىٰ ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ پورې چې الله تعالی هر امت ته پیغمبران استولي دي، هغوی ته یې د یو الله تعالی په عبادت امر کړی دی او د طاغوت د عبادت څخه یې منع کړي دي.

**دلیل:** الله تعالی فرمايي:{وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولاً أَنِ اعْبُدُواْ اللّهَ وَاجْتَنِبُواْ الطَّاغُوتَ}[ النحل: ۳۶].

**ترجمه:** یقینا مونږ په هر امت کې یو رسول (د دغې فرمان سره)رالیږلی دی چې: د الله عبادت وکړئ او له طاغوت څخه ځان وژغورئ.

الله تعالی په ټولو بندګانو دا فرض کړي ده چې په طاغوت باندې کفر وکړي او په یو الله ایمان راوړي.

ابن قیم رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي: هر هغه څوک دی چې بنده یې په عبادت، تابعدارۍ او یا خبره منلو د شریعت له پولو بهر شي.

**طواغیت ډیر زیات دي خو سره یې پنځه دي:**

۱- ابلیس ملعون.

۲- هغه څوک چې خلک یې عبادت وکړي او هغه پرې خوښ وي.

۳- هغه څوک چې خلک خپل عبادت ته رابولي.

۴- هغه څوک چې د غیبو د علم دعوا وکړي.

۵- هغه څوک چې د الله د دین څخه پرته په نورو قوانینو فیصله کوي.

دلیل: الله تعالی فرمايي:{لاَ إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ قَد تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِن بِاللّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىَ لاَ انفِصَامَ لَهَا وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ}[البقره: ۲۵۶]

**ترجمه**: د دین په (منلو) کې زور نشته، بیشکه سمه لار د کږې لارې څخه څرګنده شوې ده، نو هر هغه څوک چې په طاغوت کفر وکړي او په الله ایمان راوړي، بیشکه چې ده کلکه کړۍ ټینګه نیولې ده چې هیڅکله هغې لره شکیدل نشته او الله تعالی اوریدونکی او علم لرونکی دی.

او همدا د ( لا اله الا الله ) معناه ده.

او په حدیث کې راغلي دي «رأسُ الأمرِ الإسلام، وعمودُه الصلاة، وذِروةُ سنامِه الجهادُ في سبيل الله».

**ترجمه**: د دین بنیاد اسلام دی او ستنه يې لمونځ دی او لوړه څوکه یې جهاد دی.

والله اعلم

وصلى الله على محمد وآله وصحبه وسلم

**شيخ محمد بن عبد الوهاب رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي:**

د ډيرو عجيبه كارونو او د لوی غالبه بادشاه د قدرت د لويو نښانو څخه، دغه شپږ اصول هم دي چې الله تعالى په پوره وضاحت سره د خلكو د ګمان نه په لوړ انداز عامو خلكو ته بيان كړي دي، ليكن د دې بې مثاله وضاحت باوجود پكې د نړۍ ډير تكړه او عقلمند خلك غلت شوي دي! مګر ډير كم خلك به لدغې غلتۍ بچ وي.

## لومړی اصل:

**ټول دین یواځې الله لره خاص کول چې هیڅ شریک ورسره نشته او د هغه د ضد یعنې د الله تعالی سره د شرک بیان کول،** بیا زیاتره قرآن کریم په دغه موضوع د څو لارو څخه بیان کړی چې ډیر کم عقل او کمزوري ذهن والا انسان پرې هم پوهیږي،

لیکن چې کله په امت د کمزوری او فتنو مختلف حالات راغلل، نو شیطان ورته اخلاص د نیکانو خلکو په بدي بیانولو او د هغوی په حقونو کې د نقصان په انځور کې ښکاره کړ! او شرک یې ورته د نیکانو خلکو د محبت او تابعداری په انځور کې ښکاره کړ.

## دویم اصل:

**الله تعالی امر کړی چې په دین کې سره را یوځای شئ او د جدایۍ او ډله بازۍ څخه ځان وژغورئ** او دا خبره یې په پوره توګه بیان کړې ترڅو پرې عام خلک هم پوه شي، الله عزوجل مونږ لدې منع کړي یو چې د مخکنو قومونو په څیر ډله بازي او جدایي اختیار کړو، ځکه چې هغه قومونه له همدې امله هلاک شوي دي، الله عزوجل دا خبره هم ذکر کړې چې ما مسلمانانو ته په دین کې د اجتماع او وحدت امر کړی او په دین کې مې له جدایۍ او ډله بازۍ

ځخه منع کړي دي او د لا ډير وضاحت لپاره نبوي سنت ډير عجيبه دلائل او مسائل پدې باب کې ذکر کړي دي.

خو بيا وروسته پيړيو کې خبره خرابه شوه او دې ته ورسيده چې اوس د دين په اصولو او فروعو کې جدايي او اختلاف علم او په دين کې پوهه ګڼل کيږي او چې څوک په دين کې د يوځای کيدو او وحدت خبره کوي نو هغه ته زنديق او ليونی ويل کيږي!

## دريم اصل:

**د اسلامي ملت وحدت به هغه وخت مینځ ته راځي چې کوم مسلمان په مونږ مشر شي نو د هغه خبره به اورو او منو به یې، اګر که دغه مشر يو حبشي غلام ولې نه وي،** دغه خبره هم الله تعالی پوره او کافي، شافي او له ډیرو خواو څخه شرعا او قدرا بیان کړې ده.

بیا داسې وخت راغی چې دغه اصل د علم ډیرو دعویدارو نه پیژندل، نو عمل به پرې څنګه وکړي!!!.

## څلورم اصل:

**د علم او علماؤ او فقه او فقهاؤ وضاحت کول او ترڅنګ یې هغه څوک بربنډول چې د دغو خلکو سره مشابهت کوي او د دغو له جملې څخه نه وي،** دغه اصل الله رب العالمین د سورة البقره په اول کې واضحه کړی چې پیل یې لدغه ځایه دی:( يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ الَّتِي أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ)[البقره:۴۰].

**ترجمه**: ای بني اسرائیل تاسو زما هغه نعمت رایاد کړئ چې ما درباندې کړی.

پای یې پدغه وینا ده چې د ابراهیمعَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ له یاد څخه مخکې دی:(يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ الَّتِي أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ)[البقره:۱۲۲].

**ترجمه**: ای بني اسرائیل تاسو زما هغه نعمت رایاد کړئ چې ما درباندې کړی.

دغه اصل بیا په سنت(احادیثو) کې نور هم زیات واضحه کړی شوی، چې یو عام کم عقل انسان پري هم پوهیږي.

بیا دا اصل د خلکو په نزد له ډیرو نا اشنا شیانو څخه وګرځیده!

تردې چې علم او فقه بدعت او ګمراهي وبلل شوه او د هغوی غوره مشغله حق د باطل سره ګډوډ کول وو او هغه علم چې الله



تعالی په مخلوق فرض کړی او صفت يې ورله بيان کړی په هغې ژبه نه خوځوي مګر ليونی يا زنديق! او هغه څوک چې د علم دښمن وي او کرکه ترې کوي، بلکې د علم څخه په ځان ساتنه او خلک ترې منع کولو کې يې کتابونه ليکلي وي؛ دغه انسان خلکو ته علامه او فقيه ښکاري!

## پنځم اصل:

الله تعالی د خپلو اولياؤ(دوستانو) بيان او وضاحت کړی او د هغو خلکو سره يې ورله توپير بيان کړی چې د الله د اولياؤ سره ځان مشابه کوي خو د الله دښمنان؛ منافقين او فاجران وي.

د دې اصل په وضاحت کې دغه يو آيت د سورت آل عمران هم کافي دی چې الله تعالی فرمايي:( قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ)[آل عمران:۳۱].

**ترجمه**: ته ورته ووايه: که چيرته تاسو د الله تعالی سره محبت لرئ، نو زما تابعداري وکړئ، چې الله درسره محبت وکړي او ګناهونه در وبښي او الله بښونکی مهربان دی.

او يو آيت د سورة المائده چې الله تعالی فرمايي:( يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَن يَرْتَدَّ مِنكُمْ عَن دِينِهِ فَسَوْفَ يَأْتِي اللَّهُ بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ يُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَائِمٍ ۚ ذَٰلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ)[المائده:۵۴].

**ترجمه**: ای مؤمنانو څوک چې په تاسو کې د خپل دين څخه مرتد شو، نو ژر دی چې الله تعالی به يې په بدله کې داسې قوم راولي چې الله تعالی به ورسره مينه لري او هغوی به د الله تعالی سره مينه

لري، د مؤمنان په اړه به ډیر عاجزي کونکي او په کافرو به ډیر زورور او سخت وي، د الله تعالی په لار کې به جهاد کوي او د الله تعالی په اړه به د چا د ملامتیا څخه نه ویریږي، دغه د الله فضل دی چا ته چې وغواړي ورکوي یې او الله د پراخۍ والا او پوهه دی.

او دریم ایت د سورة یونس:( أَلَا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ* الَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ)[یونس:۶۲، ۶۳]

**ترجمه**: خبردار د الله تعالی په دوستانو (ولیانو) به نه ویره وي او نه به غمژن وي، هغه خلک چې ایمان یې راوړی او تقوا دار وي.

لیکن په امت کې بیا خبره خرابیده-بالخصوص د علم د دعویدارو او هغه چا په نزد چې ځان د مخلوق رهبر او لارښود بولي او د شریعت د ساتنې دعوې کوي- تردې چې په اولیاؤ (دالله تعالی سره دوستي کونکو) کې دا شرط مقرر شو چې: ولیان به د پیغمبرانو تابعداري پریږدي که چا د پیغمبرانو تابعداري وکړه نو هغه د الله تعالی ولي ندي!.

ولي باید جهاد پریږدي، که جهاد یې وکړ نو دا لله تعالی له اولیاؤ څخه ندی!،

ولي به ایمان او تقوا پریږدي، که د ایمان او تقوا خیال یې وساته نو دا لله تعالی اولیاؤ څخه ندی!.

یا الله! مونږ ته معافي وکړي او مونږ روغ وساتې، ته دعاء قبلونکی یې.

## شپږم اصل:

**د شیطاني شبهې رد،** هغه شبهه چې شیطان پدې خاطر جوړه کړې ترڅو قرآن اوسنت پرېښودل شي او د خلکو د رایو او مختلفو بیلابیلو خواهشاتو تابعداري وکړی شي.

**هغه شیطاني شبهه دا وه:** چې په قرآن کریم یوائې هغه څوک پوهیږي چې مجتهد مطلق وي، یا هغه مجتهد چې دا او دا... صفات ولري؛ داسې صفات یې بیان کړي وو چې کیدیشي ټول په پوره توګه په ابوبکر او عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا کې هم موجود نه وي!.

نظریه یې دا وه: که دغه شان مجتهد نه وي نو باید قرآن او حدیث ته څوک نږدې نشي.

او دا خبره یې لازمي فرض کرځولې وه، چې هیڅ ډول شک او شبهه پکې نه وه، که چا به د قرآن او سنت څخه هدایت طلب کړ، نو هغه به یا زندیق و یا لیونی!، ځکه چې د دغې شبهې له مخې په قرآن او حدیث پوهیدل ډېر ګران دي.

لیکن الله عزوجل لره پاکي او ثناء ده چې هغه په کوم بهتر انداز د دغې ملعونې شیطاني شبهې رد له څو خواو څخه په شرعي او قدري، پیدا یشي او حکمي انداز کړی، پداسې انداز سره چې پیژندل یې د عامو ضروریاتو څخه ګرځیدلی، لیکن ډېر زیات د خلکو څخه

نه پوهيږي، (لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلَىٰ أَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ، * إِنَّا جَعَلْنَا فِي أَعْنَاقِهِمْ أَغْلَالًا فَهِيَ إِلَى الْأَذْقَانِ فَهُم مُّقْمَحُونَ* وَجَعَلْنَا مِن بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا وَمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا فَأَغْشَيْنَاهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ* وَسَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ* إِنَّمَا تُنذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّكْرَ وَخَشِيَ الرَّحْمَٰنَ بِالْغَيْبِ فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَأَجْرٍ كَرِيمٍ)[يسن:٧-١١]

**ترجمه**: يقينا ثابت شوې ده وينا د عذاب د دوی څخه په ډيرو، نو دوی ايمان نه راوړي* مونږ ګرځولي دي د دوی په سرونو کې طوقونه، چې هغه د دوی زنو ته رسيدلي دي، نو دوی سرونه پورته نيولي* مونږ ګرځولی د دوی مخې ته ديوال او د دوی شا ته ديوال، مونږ د دوی په سترګو پرده راوستې، نو دوی نه ګوري* په دوی برابره ده که ته ورته دعوت وکړې او که يې ورنکړې؛ دوی ايمان نه راوړي* يقينا ته هغه څوک ويروې(ستا دعوت ورته فائده ورکوي)، چې د رحمن ذات څخه په غيبو ويريږي، نو دغه انسان ته د مغفرت او عزتمند(لوی) اجر زيری ورکړه.

والحمدلله رب العالمين.

وصلى الله علد سيدنا محمد وعلى آله وصحبه وسلم تسليما كثيرا إلى يوم الدين.

زه د عرش د مالک کریم ذات څخه سوال کوم چې په دنیا او آخرت ستا مرسته وکړی، او تا مبارک وګرځوي، هرچیرته یې مبارک اوسې، الله دې تا له هغه کسانو څخه وګرځوي چې که څه ورکړل شي شکر کوي، که امتحان پرې وکړل شي صبر کوي او که ګناه ترې وشي دالله تعالی نه بښنه غواړي، ځکه دغه درې شیان(شکر، صبر، استغفار) د نیک بختۍ عنوان دی.

ته پدې پوهه شه –الله تعالی دې تا ته د خپلې تابعدارۍ لاره وښايي- چې (حنيفي) د شرک څخه پاک ابراهيمي ملت (دين) دا دی چې ته د الله عبادت په اخلاص سره وکړې، لکه چې الله عزوجل فرمايي:(وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ)[الذاريات:٥٦]

**ترجمه**: ما ندي پيدا کړي پيريان او انسانان مګر پدې خاطر چه زما بندګي وکړي.

کله چې پدې پوه شوې، چې ته الله تعالی د خپلې بندګۍ لپاره پيدا کړی يې نو پوهه شه چه عبادت ته هغه وخت عبادت ويل کيږي چې توحيد ورسره وي، لکه چې د لمانځه لپاره پاکي شرط ده، او عبادت هغه وخت فاسد شي چه شرک پکې پيدا شي، لکه انسان چې بې اودسه شي، اوس چې ته پدې پوه شوې، چې دشرک په ګډون عبادت خرابيږي، عمل بربادېږي، او انسان په جهنم کې د هميشه پاتې کيدونکو څخه ګرځي، نو د دې معرفت څخه به درته داخبره هم واضحه شي چه ترټولو مهمه خبره داده چه د شرک په اړه ځان پوه کړو، پدې اميد چه الله تعالی مو د شرک د جال څخه خلاص کړي، د کوم په اړه چې الله تعالی فرمايي:(إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ)[النساء:٤٨]

**ترجمه**: یقینا الله تعالی چاته شرک نه ښښي او که چا ته یې خوښه شي نو د شرک نه بغیر ګناهونه ورته ښښي.

د دې خبرې د لا ښه وضاحت لپاره باید هغه څلور قاعدې وپیژنو چه الله تعالی په خپل کتاب کې ذکر کړي دي.

**لومړۍ قاعده:**

ته باید پدې پوه شي چه د کومو کافرانو سره رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جنګ کړی وو، هغوی پدې اقرار کولو چه الله تعالی پیدا کونکی او تدبیر جوړونکی دی خو دې اقرار هغوی په اسلام کې داخل نه کړل.

**دلیل:** الله تعالی فرمايي:(قُلْ مَنْ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَمَّنْ يَمْلِكُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَمَنْ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَمَنْ يُدَبِّرُ الْأَمْرَ فَسَيَقُولُونَ اللَّهُ فَقُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ)[يونس:٣١]

**ترجمه:** ته ورته ووايه چه د اسمان او زمکې نه څوک رزق درکوي؟ او هغه څوک دی چې (ستاسو) غوږونه او سترګې یې په واک کې دي؟ او څوک ژوندی د مړي او مړی د ژوندي نه راوباسي او څوک د کار تدبیر جوړوي، نو ژر دی چې دوی به ووايي: الله تعالی دغه کارونه کوي، نو ته ورته ووایه: آیا تاسو د الله تعالی څخه نه ویریږئ؟.

**دويمه قاعده:**

مشرکانو به ويل: مونږ دغه باطل خدايان نه رابلو او نه ورته توجه کوو، مګر پدې خاطر چه مونږ الله ته نږدې کړي او زمونږ سپارش وکړي.

د نږدې کولو دليل: الله تعالى فرمايي:( وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِهِ أَوْلِيَاءَ مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَى إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ فِي مَا هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ هُوَ كَاذِبٌ كَفَّا)[الزمر:٣]

**ترجمه:** هغه خلک چه د الله تعالى نه بغير بل څوک دوستان نيسي او وايي: مونږ د دوی عبادت نه کوو - مونږ خو دغه کارونه د دې لپاره کوو چې دوی — مونږ الله تعالى ته په درجه کې نږدې کړي، يقينا الله تعالى به دقيامت په ورځ د دوی په مينځ کې فيصله وکړي، الله تعالى دروغژن کافر ته هدايته نه کوي.

د سفارش دليل: الله تعالى فرمايي:(وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللَّهِ)[يونس:١٨]

**ترجمه**: دوی د الله تعالى نه بغير د هغه چا بندګي کوي چه نه ضرر او نه ورته نفع رسولی شي او وايي: دغه د الله تعالى په وړاندې زمونږ سپارشيان دي.

**سپارش دوه ډوله دی**: یو هغه سپارش چې الله تعالی نفي کړی دی او بل هغه چې الله تعالی ثابت کړی دی.

**منفي سپارش**: هغه دی چې د الله تعالی نه بغیر له بل چا څخه په هغه څه کې طلب کړی شي چې یواځې الله عزوجل پرې قادر وي.

**دلیل**: الله تعالی فرمايي:( يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خُلَّةٌ وَلَا شَفَاعَةٌ وَالْكَافِرُونَ هُمُ الظَّالِمُونَ)[البقره:۲۵۴].

**ترجمه**: ای مؤمنانو تاسو د هغه څه نه خیرات وکړئ چې مونږ درته درکړي دي، مخکې لدې چې داسې ورځ راشي چې نه پکې خرخول وي، نه دوستانې چلیږي او نه سپارش او کافران! همدوی ظالمان دی.

**ثابت سپارش:**

هغه سپارش دی چې د الله عزوجل څخه غوښتلی شي، پدغه کار د سپارش کونکي اکرام کیږي، خو د چا لپاره چې سپارش کیږي د هغه د وینا او عمل څخه به الله راضي وي او هم به الله تعالی د هغه په اړه د سپارش اجازه کړې وي، لکه چې الله عزوجل فرمايي:(مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِندَهُ إِلَّا بِإِذْنِهِ)[البقره:۲۵۵].

**ترجمه**: هغه څوک دی چې د الله په وړاندې سپارش وکړي! مګر د الله عزوجل په اجازه.

## دريمه قاعده:

رسول اللهﷺ داسې خلکو ته راغی چې د يو بل سره يې د عبادت په ډول کې توپير درلوده؛ چا د ملائکو عبادت کوو، چا د پيغمبرانو او نيکانو عبادت کوو، چا د ونو، بوټو عبادت کوو او چا د لمر او سپوږمۍ عبادت کوو، رسول اللهﷺ د ټولو پرخلاف جنګ اعلان کړ او د هغوی پر خلاف جنګ کې يې د هغوی ترمنځ کوم توپير ونکړ.

**دليل**: الله تعالی فرمايي:(وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ)[الانفال:٣٩].

**ترجمه**: او تاسو د دوی پرخلاف وجنګيږئ، تردې چه فتنه پاتې نشي، او ټول دين د الله شي.

د مشرکينو لخو د لمر او سپوږمۍ د عبادت دليل د الله دا وينا:( وَمِنْ آيَاتِهِ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ لَا تَسْجُدُوا لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ وَاسْجُدُوا لِلَّهِ الَّذِي خَلَقَهُنَّ إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ)[فصلت:٣٧].

**ترجمه**: د الله عزوجل د آيتونو څخه شپه او ورځ، لمر او سپوږمۍ دي، تاسو لمر او يا هم سپوږمۍ ته سجدې مه کوئ، بلکې هغه ذات ته سجده وکړئ چې دغه شيان يې پيدا کړي دي، که چيرته تاسو يواځې د الله تعالی عبادت کوئ.

د ملائکو د عبادت دلیل، الله تعالی فرمايي: (وَلَا يَأْمُرَكُمْ أَن تَتَّخِذُوا الْمَلَائِكَةَ وَالنَّبِيِّينَ أَرْبَابًا أَيَأْمُرُكُم بِالْكُفْرِ بَعْدَ إِذْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ)[آل عمران:۸۰].

**ترجمه**:او تاسو ته امر نه کوي چې تاسو ملائک او پیغمبران په خدایۍ سره ونیسئ، آیا تاسو ته د کفر امر وکړي!؟ وروسته له هغې چې تاسو مسلمانان يئ.

د پیغمبرانو د عبادت دلیل، الله تعالی فرمايي:( وَإِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ أَأَنتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَٰهَيْنِ مِن دُونِ اللَّهِ قَالَ سُبْحَانَكَ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أَقُولَ مَا لَيْسَ لِي بِحَقٍّ إِن كُنتُ قُلْتُهُ فَقَدْ عَلِمْتَهُ تَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِي وَلَا أَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِكَ إِنَّكَ أَنتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ)[المائده:۱۱۶].

**ترجمه**: کله چې الله عزوجل وويل: ای عیسی-عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ- آیا تا خلکو ته ویلي چې ما او زما مور د الله تعالی نه بغیر په خدایۍ سره ونیسئ؟ هغه وویل: تا لره پاکي ده، دا کار ماله مناسب ندی، چې زه هغه څه ووایم چې زما حق نه وي، که چیرته ما ویلي وی نو تا ته به معلوم وی، ته پوه یې په هغه څه چې زما په نفس کې دي او زه نه

پوهیږم په هغه څه چې ستا په نفس کې دي، ته په پټو کارونو ښه پوه یې.

د نیکانو خلکو د عبادت دلیل:( أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُورًا)[الاسراء:٥٧]

**ترجمه**: دا هغه نیکان خلک دي چې دا مشرکان یې د الله نه بغیر رابلي، لیکن دغه نیکان په خپله هغه هڅه کې دي او خپل رب ته د نږدې کیدو لارې لټوی، د هغه د رحمت غوښتونکي او له عذاب یې ویریدونکي دي، یقینا ستا د رب عذاب د ویرې لائق دی.

د کڼو او بوتو(ونو) د عبادت دلیل، الله عزوجل فرمایي:( أَفَرَأَيْتُمُ اللَّاتَ وَالْعُزَّىٰ*وَمَنَاةَ الثَّالِثَةَ الْأُخْرَىٰ)[النجم:٢٠-٢٢].

**ترجمه**: آیا تاسو لات او منات لیدلي؟ او هم منات چې دریم ورستنی دی؟.(او دغه شیان کڼې او بوتې وو).

او د ابو واقد اللیثيرَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ څخه روایت دی، وایي چې مونږ د رسول اللهصَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره حنین ته په داسې حال کې ووتو چې په کفر پریښودو مو ډیر وخت نه وو تیر، د مشرکینو یوه د بیرې ونه وه، هغوی به ترې طواف کولو او خپلې وسلې به یې ورته زوړندولې،

دغې ونې ته به(ذات انواط) ویل کیده، مونږ هم په لاره کې په یوه بیره ورغلو نو رسول اللهﷺ ته مو وویل: ای د الله رسولهﷺ مونږ له هم داسې ونه وګرځوه لکه د دغو مشرکینو، چې وسلې ورته د عبادت په نیت زوړندو، نو رسول اللهﷺ وفرمایل:« زما دې په هغه ذات قسم وي چې زما روح د هغه په لاس کې دی، تاسو داسې خبره وکړه لکه د موسیعَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ قوم چې کړې وه، چې ویل یې:(مونږ له داسې معبود وګرځوه لکه څرنګه چې د مشرکینو معبودان[خدایان] دي، هغه ورته وویل: تاسو یو قوم جاهله يئ)».

## څلورمه قاعده:

زمونږ د زمانې مشرکان د مخکنو مشرکانو څخه په شرک کې ډير زيات سخت دي، ځکه چه مخکنو مشرکانو به د راحت، خوشحالۍ او اسانۍ په وخت کې شرک کولو، خو د سختۍ په وخت کې به يې الله تعالی ته اخلاص کولو، مګر زمونږ د زمانې مشرکان په ټولو حالاتو کې شرک کوي.

**دليل:** الله تعالی فرمايي:( فَإِذَا رَكِبُوا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ إِذَا هُمْ يُشْرِكُونَ)[العنكبوب:٦٥]

**ترجمه:**کله چه دوی په کشتيو کې سپاره شي، نو الله تعالی په اخلاص سره رابلي، خو کله يې چې الله تعالی وچې ته را خلاص کړي، نو بيا دوی شرک کوي.

د شيخ محمد بن عبد الوهاب رَحِمَهُ ٱللَّهُ خبره پای ته ورسيده

(رحمه الله رحمة واسعة وجزاه عن المسلمين خيرا الجزاء)

